


د انټرنیټ په مخ

کمپوز : نسیم خان ستوری

ترتیب : ایمل خان ستوری

# سرلیکونه




**ډاکتر کبیر ستوری**

**Dr. Kabir Stori**
Kiebitzweg 12
50389 Wesseling
Germany (Deutschland)
**www.kabirstori.com**
**E-Mail: stori@kabirstori.com**

# دخورانو مفکوره یم!

په ملی غورځنګ زما ملی قیام دی
استعمار او استثمار سره جنک دی
غم او درد راسره تل چې د خپل قام دی
د پښتون په ازادۍ باندی مې ننګ دی
د ملی وحدت ژوندی مبارزه یم
زه سکروټه د خورانو مفکوره یم

پښتونواله به اساس د قانون کېږدم
د پښتون دولت به جوړ کړم خپل وطن کې
اغیارانو او پردو کلچر به پرېږم
د پښتون حکومت به جوړ کړم خپل وطن کې
هر د وخت مغل ته د خوشال توره تیره یم
زه سکروټه د خورانو مفکوره یم

په پښتو به دفترونه ټول چلیږی
پښتانه به زیاتی نه وی غلامان
د پښتون ملی سرود به بیا غږیږی
د پښتون بیرغ به جګ وی په جهان
انقلاب د اسمان ستوری پلوشه یم
زه سکروټه د خورانو مفکوره یم

# د بزګر د کور لوګی

د بزګر د کور لوګیه !
شین اسمان ته پورته کېږه !
وریځې راوله تیاره کړه !
بریښنا جوړه کړه غړمبېږه !

شه رڼلې او تندرونه د ګنجې په سر غورځېږه !
د بزګر د کور لوګیه ! شین اسمان ته پورته کېږه !

چې ګنجې درنه خلاص نه شي
ګنجې ډېر زیات مکرجن دی
تښتیدلې دی سارا ته
د مچانو په اتڼ دی

د خوسا بوټي په شان دی ته ئې مرګ پسې پا ځېږه !
د بزګر د کور لوګیه ! شین اسمان ته پورته کېږه !

ګنجې وائي چې پښتون یم
په پښتو هیڅ نه پوهیږی
ګوره پام کړه غلط نشې
په پارسو باندې غړیږی

د لیلې د لاس غړګیه خطا نشې پری لګېږه !
د بزګر د کور لوګیه ! شین اسمان ته پورته کېږه !

د ګنجې ناظر ګنجې دی
په کاله کې پروت پر کټ دی

لــــــیونـــــی ســـرســام پـــــمـــن دی
حـــــرکـــــت نــــه کـــوی لـــــتـ دی

د زیـــارکـــښو اوسیله ســتوری کړنګ وهه راولیږه !
د بــزګر د کــور لـوګیـه ! شـیـن اسمان ته پورته کیږه !

## خـــپله کـــیږدۍ ښـــه ده

مـــه تـــره شـــملـه یــاره پـــه غــاړه دی اوګـــی ښــه ده
سـل بې ننـګ زلـــمونـه یـــوه نــره مــلالــی ښــه ده

تــه کـینـه کـرار پــه کـور ، بـل دی کـره وړو تـه اور
ما تـه د خـوشــال تـوره چـابـکـه مـړنـی ښـه ده

تـه لـولی د بل بـوستان، هـیـردی کړه د مـور لـسـان
مـــا تـــه د غـــنـی یـــو ه غـــزلـــه لــیـونــی ښـه ده

تـه وای ګـلسـتـان نـغـمی، زه وایم د رحـمـان نغمی
مـاتـــه د کـــروړ مـلــی بـــدلـــه پـــخـوانــی ښـــه ده

ځـــان بــه هـله شـــی مـې ځـــان ،شی چې د وطن قربان
ســتوری د پـردی بـنـګلی نـه دا خپلـه کـیـږدی ښه ده

## قصور دی په اغا کې

مسافر یم علم کومه اروپا کې
چې مې لوړ شی د وطن شان په دنیا کې

زه یم خوار وطن مې شاړه شانکاره ده
بې علمۍ قصور زما دی په اغا کې

زه د جهل په ځنځیر یمه تړلی
اغا جان مې نه پرېږدی د علم خوا کې

ځان لیدی د جهالت تورتم کې نشم
شم لیدلی ځان د علم په رڼا کې

د نیکمرغه ژوند ساحل ته به رسیږی
چې د علم کشتۍ جوړه کړی دنیا کې

د ژوندون د حرکت فلسفه زده کړه
محرک شه د خپل ژوند په ارتقا کې

د عرفان اسمان کې ستوری وځلیږه
چې پیدا شی ترقۍ ژوند پښتونخوا کې

# د انقلاب د اسمان ستوري

زه وایم رښتیا ولوکه سر زما په دار شي
نه ډاریږم حق وایم که ځان زما سنګسار شي

حق ویل ترخه دي د لویانو دا متل پاتی
تریخ له زهرو ډیر وي څوک چې چښلو ته تیار شي

زړه کې چې مې څه دي نور په زړه کې ئې ساتی نشم
اوس به مې د زړه حالونه تاسی ته اظهار شی

وایمه چې حق دیته د سیوري نه ډاریږي خپل
ځغلي او پټیږي چې ئې مل سیوري په لار شي

پوه ندي نا پوه دي پوه به شي اخر په ځان باندي
ډیر زیات وي ناپوهه څوک د بل چې خدمتګار شي

دا په رینښتیا باز دي دوی ئې سترګي ورګنډلي دي
تل دده زحمت هغوي د پاره بیګا ښکار شي

دا دي ډیر بدبخته چې بل د پاره ښکار کوي
ځان لره ښکاره نکړي چې نصیب ئې افتخار شي

تره څوی ئې تربور دي ده ئې مرګ ته ملا تړلي ده
صرف ددي د پاره چې اغیار ئې طرفدار شي

خپل ورته پردي شول خو پردي به د ځان خپل نکړي
نه خپلیږي غیر اخر لیستونې کې پټ مار شي

مـا لـیـدلـی ډیر دی چـې نـاری د صـداقـت وهـی
بنـه راتـه مـعـلـوم شـی پـه اخر کې بیا ټګمار شي

کله چې هندو شي مسلمان خلک ئې شیـخ بولـی
شیـخ چې شي ټـګمـار د لـعنت طـوق د ده زنـیار شي

شیـخه سـتـا سـندری د خـوشـال ربـاب کې نه وایم
زه یـمـه پـښـتـون پـښـتـو زمـا بـه خـواروزار شـي

وخوړه پښـتـو چې ګلسـتـان بـوسـتـان کې تـا زمـا
تا پـه خـزان راوسـت نـور به غـوارم چې بـهـار شي

شیـن بڼ د پـښـتو کې تورکارغان ناولی نـه پـریـږدم
دیـــتـه راولـــم پـښـتـون بلـبل چـې پـه چغار شي

سـر چې نـذرانـه د خـپل وطـن پـه نامه نه کانـدی
قـام ولـس بـه کلـه د وطـن خـپـل خـدمـتـګار شـي

زه د پـښـتونخـوا د انقـلاب د اسـمان سـتـوری یـم
کړنګ وهم رالـویـږم چـې دښمن زمـا مـردار شـي

# د وطن خپل نه قربان شه

د ژونــد هــره مــرحــلــه کــې تــوانا او قــهـرمـان شه
د سر تـيـرو قـافـلـه کې ننگـيـالی غـښـتـلی ځوان شه

زور جــهــان د خــايـنـانـو د ظـلــمــونـو فـسـاتـونـو
ته تباه محوه نابـود کړه ، خـپـلـه تـه نوی جهان شه

په زارۍ او سوال به خپله ورځ هيـڅـکله سمه نکړی
خـواری کـښه کاريـگر شه ته خاوند د سور نشان شه

د خـائـن پـه قـصر ستوری د اسمان نه راغـورځـيـږه
دا تباه کړه اتـيم بـم شـه د وطـن خپـل قـربـان شـه

# کنډاسه بوډۍ

راشي ای عالمه څه عجبه ننداره ده
وګوري بې وسه بوډۍ خاورو کې پرته ده

نه ئې شته لاسونه بل غابښونه هم وتلي دي
نه یوه کنډاسه، بله ماته ئې پښه ده

وائي ډیر ځامن لرم خو ټولو هیره کړی یم
دوی وائ رنګ دی ورک شه پنجابۍ له تا نه ښه ده

لوی مې کړل په غیږ کې بوتکی چې شولو منډی کړی
پری ئې ښودم ځانته په بوستان کې ئې دیره ده

ټولو خرڅه کړی یم په بډو رشوتونو زه
دوی ته خو پیسه زما د غیږې نه خوږه ده

یو نه وائي موری راشه ! ستا شډله غیږه کې
رنګارنګ خوندو کې د جهان مزه پرته ده

یو ځل نه دی خپل خپلوانو څو ځله شړلی یم
څه وکړمه ربه ! د پردو نه څه ګیله ده

زه ئې سکه مور یمه پالنه مې هیڅ نه کوی
شوم ورته پردۍ د پیسو مور ورته سکه ده

غیږ کې ورته ما د ازاد ژوند خپل درس ورکړی و
اوس چه غلامان شول بخت طالع زما چپه ده

وکـړلـی بـوډۍ خـبری ډیـری زړه ئـې تـش کـړلـو
داسی مـعـلـومیـږی پـه سـخـتـیـو کې پـخـه ده

راغی یـو تـنـد باد بوډۍ ئې سیـنـد ورګـذار کـړلـه
سـیـال کـه ئـې کـوی ځـوک دا لا بـلـه تـمـاشـه ده

وائـې غـنـی خـان چـې زه پـه ژۍ ورتـه ولاړ ومه
غـږ شـو چـې سـیـنـد وړی بـوډۍ خـانـه پـښـتـنـه ده

ستوری وائـې مـوری غـیـږه سـتـا پـه دنیا نه ورکوم
تـه زمـا دوائـی کـه مـزه دی اوس تـرخـه ده

# جنت وطن دی

ځان ته دی بل کړه نور د پوهی چراغان پښتونه
ساینس او تخنیک دواړه جامه کړه نور د ځان پښتونه

بهار د خلکو په چمن او په دمن باندی دی
چمن ، دمن باندی ستا ځان له دی خزان پښتونه

د پښتونوالی د کلچر په لاره ولی نه ځی
پردو په لاره باندی ته ئې اوس روان پښتونه

جنت وطن دی دښمنانو دوزخ کړی تا ته
پخپل مکان کې تا ته نشته دی مکان پښتونه

خپلو منځو کې د ګوندی او تربګنئ د لاسه
ځان ته جوړ کړی دی خپل کور تا ګورستان پښتونه

د جهان خلک تا نه ډیر زیات مخکې تللی کنه !
د جهان خلکو سره ځان دی کړه یو شان پښتونه

د پښتنو د ژوند جهان د اسمان ستوری شه ته
وایمه تا ته کړه ازاد پښتونستان پښتونه

# پښتونخوا چې زما ده

وطن بانـدی نازیږم پښتونخوا چې زما ده
سنګـر د میړنو د پلار بابا چې زما ده

وطـن کـه د اغـیـارو شـی جـنـت زه به ئې څه کړم
جـنـت د پښتونخوا خپله دنیا چې زما ده

کلچر او فـرهـنـګ زه د پـردو کـلـه نـازیـږم
د خپل فرهنګ کلچر ناوی زیبا چې زما ده

تقلید د موډ فیشن د اروپا مې نه خوښیږی
ښه خپله پښتونخوا له اروپا چې زما ده

ملی غرور او حس د پښتونوالی مې پکار دی
پـدی کې تـرقی او اعتلا چې زما ده

ازاد یم زیږیدلی ازادۍ بانـدی به مـرمـه
پښتون یم د ازاد ژوندون فضا چې زما ده

خـتـلـی یـمـه ستوری د سبا په پښتونخوا کې
ناره د انقلاب تـا تـه سبا چې زما ده

# غل دی شی

پــــه زړه چــې ئــې د مــیــنـی اور بــلـیـــږی بــل دی شی
کـه ســری ویـــنــی د زخــم نــه تـلـیـــږی تــل دی شـــی

غـمـاز وائـې چـې ځان به دی په مینه کې شل شوټ شی
په مـیـنـه کـې کــه ځــان زمـا شـلــیـږی شــل دی شـی

چـــې مـیـــنـی انــتـهـا ته ورسیـــږی سـیــزل کـیـږی
کــه مـیـنـه کـې پــتـنـګ سره مل کیږی مـل دی شی

چې غـــل د مـحـبت شـی د خـوبـانـو پـه محفل کې
روا ورتــــه دا غــلا ده کــه غــل کـیــږی غــل دی شـی

زندیہ د تـورو زلفو کې کـه ئـې غـاړه تـه راولـیـږی
مـــرئ کــه ئــې دا ول پـــه ول کـیـږی ول دی شــی

پــه مـــینـه کـې د زړه ویـــنو نــه جـوړی که دا نی شـی
پـــه ژرنــده د هـجـران کـه بــیـا دل کیږی دل دی شی

شعار انـقلابـی د اسـمـان ســتوری نه ته زده کړه
د ژونــد ســخـتـه مـعـما دی پی حل کیږی حل دی شی

# فلسفي خيال

يــوازې نــه د يــار د زنـــې شــنــه خــالــونــه لـيـكـم
زه شـــاعـــرۍ كـې د مـــوږ، وږې تـضادونـــه ليكم

د محبت درس مې لــو ســتـلـې بې خـبـره نــه يــم
په زير بـيـنا كې ميـنـې لوږې ته بعـــدونــه لـيـكم

د مـيـنـې جــوړ شـولــو كـاركـر مـينه د كار انرژي
زه تــولـيـدې د مـيـنـې ځــكـه خـاصـيـتونـه لـيـكـم

د مـيـــنـې لـــ-وږې د لـــوړتـيا پـــوره كـــوو د پــاره
افـغــان ولـس ته فـلـسـفـې يـو څــو شـعـرونـه ليكم

قــانــون د ضد واى په هر شي كې تـضـادونه شته دى
اصلـې فـرعـې ددې تـضــادو دوه قـسـمـونـه لـيـكـم

قـانـــون د نفې واى چې نـوې تـل د زوړ ځاى نيسي
ځـــكــه د نـــوې تـكــامـــل زوړ زوالـــونـه لـيــكـم

قـانــون د ټــوپ واى پـــه يـو وار شه كيفيت شي بدل
خـودې بـدلـون ته د كمې معـيـن حـــدونـه لـيـكـم

قانون د ټوپ واى په يو وار سه كيفيت شى بدل
خو دى بدلون ته د كمى معين حدونه ليكم

د لعـل پـه رنګ په وينو رنګ چې شو د حق په غوښتو
هــغــوې پـــه يــاد انقــلابې يو څـو شـعـرونـه ليكم

# د دلبر پلو !

ونیسه پلو د سالو سر پلو
دا پلو چې ستا دی د دلبر پلو

دا د پښتنې د سر پړونی دی
ځکه ماته دا دی بختور پلو

د یکې د غیرت او حیا نښې شته
دی د پښتونوالی د سنګر پلو

ژوند سره اشنا په کارو زیار کې دی
دا د کارو زیار دی د هنر پلو

ستوری د اسمان شه وځلیږه ته
دا پړونی ستا دی د ځیګر پلو

# ښه ده شاجهانه ده

زړه رانه بې لاری شو مل شو د اشنا سره
حال مې د مجنون شولو سر شوم د بیدیا سره

ځکه چې صحرا زما ښه د ګلستانه ده
خاورو کوډۍ خپله مې ښه ده شاجهانه ده
دا د پښتو شعر مې جوړ شو د معما سره

شعر سیلابی زما ستا د ژوند کمال شولو
اوګوره برکت ددی ستا د ژوند ښه فال شولو
مینه مې پیدا شوله خپله وطن زیبا سره

خیال دی د پښتون زما مینی کې ښاغلی یم
مور چې قربانۍ ته خپل دیته زه ساتلی یم
ستوری د سبا کړه ځان خپلی پښتونخوا سره

# خوږی شکری شی

مینه چې د ژوند سره ملګری شی
هله بیا خوږی د ژوند سندری شی

بې مینې ژوندون په ژوند حساب ندی
دا لکه د غره کلکی کمری شی

نه ئې زړه کې ډار و هم د چا نه وی
چار چاپیر د دینه که لښکری شی

دا ډیر کرامت برکت د مینې دی
څوک چې شی مین زهر ی شکری شی

مست ازاد بیداره جانانه شی دا
ورکی ئې د زړه نه بیا خطری شی

پوه شی د ژوندون خپل په مانا باندی
ژوند کې مرجانونه ملغلری شی

بې مینې ژوندون ستوری کوی کله
ژوند کې که هر څو ښښی سنګری شی

## د فرایډ دلائل

د جبر جدائي ده یاره هر چیرته چې وی
ماته به د خپلو لیچو مینځ کې ځای ساتی

شعر مې فلسفه شولو چې ځان مې خپل تحلیل کړلو
عقل مې د «فرایډ» په دلائلو ودریده

وامې چو نظر د ماشوموالی تنګو سختو ته
سخته وه ماشوم ته چې د مور نه بلیده

ویره ورسره به شوه چې مور تری نه په ځنګ به شوه
دې د خپلې مور دورکیدو نه ډاریده

فکر کړو ماشوم چې مورمې لاړه بیا به رانه شی
ډار د جدائی سره همیش تکراریده

لوی چې شی مین هم د کوچنی ماشوم په رنګه شی
ندی کړی هیڅوک د ماشومانو نه ګیلی

زه د مینی لاندی جسمانی یووالی نه پیژنم
مینه یو احساس دی غریزی پوره کیدل ندی

خیال مې کړو چې مینه به عادت وی د اشنا سره
پوه شومه چې مینه یار سره عادت کیدل ندی

وکــړه تــجـربــه مــې تــشــابـــه ډېـــره مـــهـمــه ده
د یــار تــسـل پـی کـیـږی خو د یار عـوض کــیدل نـدی

مـیــــنه نــه ورکــیـږی خـو بــدلیږی په ګرانښت باندی
ګـرانښـت د مـیــنی جــز دی هــډو مـیــنه کمیدل ندی

ستـوری د پـښـتون یـم پـښـتـونـوالـه پـه مـا ګرانه ده
مــیــنـه پــښـتـنـه ده پـــښـتـونـــوالــــه بـه مــنـی

## خـــیال د عـــلم مـــقدم دی

بــیـا د چا لـه غـــمه مـې راټــول سـترګـو کــې نــم دی
کــومی خــواتـــه وتـــښـتـمه هــره خــوا ســـتـم دی

نه می شـته خواخوږی چې د غـم بار راسه پورته کړی
ځــانـــله دا درونــد بـــار پــورتـه کوم پـه ما مـاتـم دی

نــوی ربـــاب نـشـتـه دی چې نــوی نـغــمـه وغـــږوم
زوړ رباب بی ســوره دی شـــلیدلـی زیــر و بــم دی

ای د حس ناوی د ښــکلا پـه نـــنـدارتــون کې خپـل
زړه مـــې تـــا تـــه فــرش دی ستادپـاسه پـه قدم دی

ســتـوری د ښـکلا د مـحـبوبو خیالـونه پریږده نور
دا بـــه دی غـمـجـــن کـړی خـیال د عـلم مـقـدم دی

# بیګانی خوب

بیګا راته په خوب کې محبوبا راغلی وه
د مورا او پلار نه پټه دا په غلا راغلی وه

د خپلو زلفو تال باندی په ناز ناز ځنګولم
برقونه خدایګو خړ شو چې رڼا راغلی وه

نیولی وه جذبی د مینی غېږ کې ئې راټینګ کړم
د مستی مینی خپله په ښکلا راغلی وه

دی ویلی ګرانه یاره په ځیر ځیر راته وګوره
ما نه شولو کتی ورته حیا راغلی وه

محفل د خوشالۍ خندا هوش د مینی سازو
دا ځمکه د یورپ چې په ګډا راغلی وه

د ډیری خوشالۍ نه زړه زما په درینچقو
اسیا نه چې یورپ ته مې لیلی راغلی وه

د مینی درمزونو په الهام ئې پوهیدم
لیلی مې سباون کې په خندا راغلی وه

چې وبوګنیدم خوب کې بیا راوبښ شومه تنها وم
هجران کې د لیلی ماته ژړا راغلی وه

اسمان کې د لیلی او مجنون ستوری و یریوتی
ددی په ځای چې سترګه د سبا راغلی وه

## د چای خانې یار

لاړې پـدې ځـای کې ستا میلې او چرچې تیرې شوې
ځان چې دې بانډه کړه د خان بوټې شونډې پیرې شوې

تـه چـې راسـره وې الـمـانـۍ کـتـابـخـانـه کې
ټـولې مسـخـرې بـه وې پـه لانـدې چـای خـانـه کې
تا بـه ویـل «جانلاک» د زمـانـې خـبـرې ډیـرې شـوې
ځان چې دې بانډه کړه د خان بوټې شونډې پیرې شوې

ټـولـه مسـخـره وې تـا بـه زه ډیـر خـنـدولـمـه
مـا کـه نـه خـنـدلـې تـا بـه پټ پټ تـښـولـمـه
یو ورځ دغه ټوکې «سـر بـنـبلې» د غـوږ تـیـرې شـوې
ځان چې دې بانډه کړه د خان بوټې شونډې پیرې شوې

وویـل «سـر بـنـبلـې» دا غـرې دې مـاتـومـه
بـیـا کـه دې څـه وویـل پـه والله کـه دې پـریـږدمـه
تا ویـل مـامـا تـښـتم خطرې مـې د سـر ډیـرې شـوې
ځان چې دې بانډه کړه د خان بوټې شونډې پیرې شوې

خیټه او پوزه دې بـدلـه کـړه هـیـڅـا نـه پـیـژنـدلـې
د شـپـې بـه ګـرځـیـدلـې د هـر چـا نـه پـټـیـدلـې
ټـول وې مـصنوعـې چې کـله سـتـورې ولـیـدلـې
غږدې کړه ماما چې پخوانۍ کیسې دې هـیـرې شوې
ځان چې دې بانډه کړه د خان بوټې شونډې پیرې شوې

# زما لیلی ځې کنه ؟

محبوبه ته مې د وفا ځې کنه ؟
زينت د ژوند او د ښکلا ځې کنه ؟

محبوبو حس به خجل شی درته
که حسن ته ورته ښائې کنه ؟

قسم په تا پورې مې زړه تړلی
ځکه چې ته مې روح او سا ځې کنه ؟

شربت د شوندو دی را وځښوه
زما د زړه چې تسلا ځې کنه ؟

زما د ژوند د ترګمۍ د پاره
د نيمګرغۍ د ژوند رڼا ځې کنه ؟

وطنه ! ستا په مينه ژوند کومه
ځکه چې ته زما ليلی ځې کنه ؟

د ستوری سر او مال قربان شه تا نه
ته ځې ليلی پدی دينا ځې کنه ؟

## د ملګرې سره مخه ښه

ورځــه پــه مـخ دې ښـه ملـګرې ګـرانه خدای په امان
وطـن تــه پـه خیر لاړ شـی ګـرانه ځوانـه خـدای په امان

وطـــن کـې وړو تـړو ســترګـی مــونـږ تــه دی نـیولی
ګـیډی چـې پـشا کـړی وی او پونـدی وی چـاودلـی
بـیـغـوره نـشی دوی خـلاص کـړه بلانه خدای په امان
وطـن تـه پـه خیر لاړ شـی ګـران ځوانـه خـدای په امان

هــــغــــو یـــی تــه چــــې د اوړی، وړی لا وړی کــــوی
بـــیـــکـــاره وی بـنـګـــلو کـې ځـان تــه ډمـی ګـــډوی
تــنـدر ئـې راولـیـږه نـا ګـهـانـه خـدای پــــه امــــان
وطـن تـه پـه خیر لاړ شـی ګـرانه ځوانه خـدای په امان

ساپی او پـه مـومندو اپریـدو کـې کـور پـه کـور
د ټـولـی پـښـتـونـخوا غـرونـو رغـو کې لـور په لـور
د سـتـورې سـلام وایـه پـریـمـانـــه خـدای په امان
وطـن تـه پـه خیر لاړ شـی ګـران ځوانـه خـدای په امان

# د حسن لیلی

ما چې ورته وکتل دا شنه شوه په خندا شوله
خواته شوه راوړاندی په قلنګ د خولی رضا شوله

ناز او کرشمی ئې د ښکلا سره ملګری وی
غلی اداګانی ئې د مینی خوندوری وی
رای کړه دعوت د خولی بیا په پټه په مشکا شوله
ما چې ورته وکتل دا شنه شوه په خندا شوله

رمز د مسکا ئې د ځوانۍ د ساز نغمی وی
سترګو کی پرتی پټی د مینی فواری وی
مسته وه مستۍ کې د مستۍ نه په نخا شوله
ما چې ورته وکتل دا شنه شوه په خندا شوله

شوه کږه وږه زلفی خوری شوی په مخ باندی
ستړی چې شوه پری وتو په کټ کې لاندی باندی
توره شپه دی زلفو کې سهر و چې رڼا شول
ما چې ورته وکتل دا شنه شوه په خندا شوله

لمر ئې په سپین مخ باندی ګلګون شال اچولی و
ستوری پدی شال کې ئې دننه پټ نغښتلی و
راغلو مازیګر لیلی د حسن بیا جدا شوله
ما چې ورته وکتل دا شنه شوه په خندا شوله

# سلام د مینی

نن مې ترلی دی لام د مینی
ګوندی واصل شم په کام د مینی

کوه د مینی جرګه په مینه
چې برکتی شی کلام د مینی

ما خو ویلی چې مینه نشته
اوس شوم بندی زه په دام د مینی

د ګل ویشتل دی زما په ذهن
که یار مې وکړی انعام د مینی

مینه په عرش کې بالا وسیږی
خلقه عالی دی مقام د مینی

هیلی مې سپړی غوټۍ د ګلو
چې کیږدم شوندی په جام د مینی

ریباره راشه د یار د لوری
خوږ نه خوږ راوړه پیغام د مینی

د اسمان ستوری همدومره بس دی
چې یار رالیږی سلام د مینی

# بس دی!

هر څه مې یاد څه ویلی نشم
سترګې بینا لرم کتلی نشم

کاشکې چې ګونګ دی پیدا کړی وی زه
چې خوله کې ژبه خوځولی نشم

سترګې پیدا دی د لیدلو د پاره
خدایګو چې زه پری تا لیدلی نشم

که ئې دراړوم ګندۍ ئې راته
سترګې د باز په شان ګنډلی نشم

ستا د ظلمونو تړنګونو باندی
ظالمه نور زه پې ختلی نشم

ستا د غړمبارا و د قهرونو نه زه
بس دی نور هیڅ زه ډاریدلی نشم

ستوری په قصر دې ډیر وځلیده
نور دی په قصر ځلیدلی نشم

# تاله چرګه لــنګوم !!!

نــوی زمـانــه شـــوه زه خـــپل زوړ ژونـــد بـــدلـــوم
ســـاز ســـرود دی نـــوی زه خـــپل زوړ تـکور وهـــم

یـم پـه مـیخـانـه کې ښـنګ شـرابـونـه پـرهـز وکـړم
مـسـت یـــم رنـدانـه یم پـیـمـانـــی خپلـی چـښوم

ای واعـــظـــه راشـه چـې دی زړه کـې رڼـا ئـې وشـی
ســر، ســره دی خـپـلـــه پـــیـمـــانـــه زه چـنـــګـوم

غواړی که ظاهر باطن دی پاک شـی ریـا کار نه شـی
وچـــښـه پـــیـمـانـــی ډیـری چـــې تــــا زه خـــــنـدوم

بنده صومعه کړه مـیـــخــانـی دروازه خـــلاصـه شـوه
راشـه د نـــیـــشـــو پـــه تـال چـې تـــا و ځـــنـګـوم

مـست خـرابـاتـی یم خرابـات د پـیر بـالــکـی یـمـه
خم د مـیـخـــانـی ځــانـلا خپل ځـــانـــتـه ځـنـځـوم

ســتـوری د اقـبـــال یـــمه واعـــظـه ورځ دی ښـه شـوله
غلـــی کښـیـنـه چـپ شــه تـالــه چـرګـه لـنــګـوم

# په خيالونو کې زما

د مينې ساز غږيږي په چرتونو کې زما
تالونه دي شي زلفې په خيالونو کې زما

د مينې غلبلو کې انديښنې دي شي شريکې
الهام کيږي د مينې بيا خوبونو کې زما

تخنيږم وبوګنيږم خوب کې لوټ په لوټ زه اوړم
ښکاره شي مينه ستا د زړه سوزونو کې زما

معصوم ماشوم زړګې مې ژاړي تا پسې تا غواړي
د وينو فوارې شي زړه زخمونو کې زما

چې ګرم مې نکړي ياره ليونۍ غوندې که ښکارم
راځې ليونۍ مينه ستا فکرونو کې زما

که څريکې او د زړه دردونه وينې زما راشه
د څريکو شمار ئې نشته زړه دردونو کې زما

د ستوري پاکه مينه نازولې چې په تا ده
جذبه د مينې ستا شته په شعرونو کې زما

# پښتنه مینه !

نه خوښوم دا ګلونه خوا کې چې مې یار نشته
دا دې د پردو باغونه خپل زما ګلزار نشته

هر طرف ته پیغلې سترګکونه اشاري کوي
څه به کړمه دغه سترګې، سترګې د نګار نشته

دلته تور پړونې، پښتنې غیرتې نشته دي
ورکې دي شي دا بې حیا هیڅوک حیا دار نشته

دا پیغلې قربان شه، تور پړوني د نیم نوک ځینې
هغه دې معصومې پیغلې دوي د یارۍ شمار نشته

دلته د پوډرو مخ سپینې او بې باکې زور ده
کله به ځم هغه ملک ته چیرته چې سنګار نشته

هغه بې سینګاره خداې پیدا د لیلې خور کړله
مینه یې پښتنه ده د بل چا سره ئې کار نشته

ستوری پښتنه مینه په مرګ جدا کیداې نشي
ډیره ده سپخیلې دیکې هیڅ چې خنډ و خار نشته

# ستا په انتظار !

پتنګ مینه کې ناست دی د رڼا په انتظار
زه ستا وصال ته ناست یمه خطا په انتظار

وعده دې وه بېګاله تا ویل بېګا له به درځمه
بېګا تیر شو سبا شو د بېګا په انتظار

رنځور نه یم د تبې ، یم رنځور د محبت ستا
دارو مه راوړه ما ته یمه ستا په انتظار

منم چې محبوبو سره جفا شته وفا نه وی
یوځل راشه زه یم ستا د جفا په انتظار

زما د لیونی زړه لیونۍ خبری واوره
چې ما ته وائې یم زه د لیلی په انتظار

شبنم په ګلو نه دی دا د ګل د سترګو نم دی
سبا کې چې ګل ژاړی د بورا په انتظار

د سوزو ساز د مینی په جهان ئې ستوری سوځه
که غواړی کینا ستل د دلربا په انتظار

# په تربړمی کې رڼا

چپه چوپیا وه سپیره ډاګونه
ټول اغزي ؤ نه وګلونه

توره پرده وه د غم نه ډکه
نه خوشالتیا وه نه سرودونه

دی تربړمی کې څه رڼا راغله
غوړ ته مې راغلل څه فریادونه

زه ور روان شوم چې کوم درمند دی
وی خوری زلفی زنګین ټالونه

ما ویل راشه ! ټال کې و ځانګه
ګوندی ورک ستا شی د زړه دردونه

درد مې ورک نه شو لا پسی زیات شو
آه و فغان کړی تل زخمی زړونه

د وطن مینه کې ځان قربان کړه
ستوری پکار دی انقلابونه

